د پوهنې وزارت

# د رسامۍ هنر

## لومړی ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ ش





# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی    دا عزت د هـــر افغان دی

کور د سولې کـور د تورې    هر بچی یې قهرمـــان دی

دا وطن د ټولو کـــور دی    د بلوخـــو د ازبکـــو

د پښتـــون او هزاره وو    د ترکمنـــو د تاجکـــو

ورسره عرب، گوجـــر دي    پاميريان، نورستانيـــان

براهوي دي، قزلباش دي    هم ایمـــاق، هم پشه یان

دا هېـــواد به تل ځلېږي    لکـه لمـــر پر شنه آسمان

په سینـه کې د آسیـــا به    لکــه زړه وي جـــاویدان

نوم د حق مو دی رهبـــر    وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




# د رسامۍ هنر

## لومړی ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ . ش.

## د کتاب ځانګړتیاوې

---

**مضمون:** د رسامۍ هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** لومړی

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

---

# د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړلیک

**سرلیك ..... مخ**

# لومړی برخه

لومړی لوست.

## د خطونو ډولونه

موخه: زده کوونکي به د قلم د نیولو او د خطونو له ډولونو سره بلدشي.



# د رنگونو پېژندل

موخه: زده کوونکي به له رنګونو سره بلدتیا پیدا کړي.



# د انځورولو وسیلې

**موخه: د انځورګرۍ له وسایلو سره د زده کوونکو بلدتیا او د هغوی پېژندنه.**


**پوښتنې**

۱- د رسامۍ د وسایلو نومونه ویلی شئ؟

۲- د لاندې شیانو په رسمولو کې له کومو وسایلو څخه کار اخلئ؟






زده‌کوونکي دې په خپلو ډلو کې د رسامۍ د وسایلو نومونه واخلي






زده‌کوونکي دې د خپلې کورنۍ له غړو سره د انځورګرۍ د وسایلو او د هغوی د استعمال په اړه خبرې وکړي.

# آزادې کرښې

**موخه: د آزادو کرښو زده کړه او تمرين**



**پوښتنې**

۱. په دې مخ کې څه شی وينئ؟

۲. دا کرښې يوه له بلې سره څه توپير لري؟






زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د لاس د حرکت په واسطه او د نقاشۍ په بېلا بېلو وسیلو آزادې کرښې تمرین کړي.






زده کوونکي دې آزادې کرښې په خپلو کتابچو کې تمرین کړي.

# منظمې کرښې

**موخه:** د منظمو کرښو له رسمولو سره د زده‌کوونکو بلدېدل؟



**پوښتنه**

۱. کله مو دا ډول کرښې لیدلې وې؟






زده کوونکي دې په انفرادي ډول لاندې کرښې رسم کړي.














زده کوونکي دې په خپل چاپېریال کې منظمې کرښې وګوري او هغه دې تمرین کړي.

# ساده شکلونه

**موخه: د ساده شکلونو له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.**



**پوښتنې**

**۱. لاندې شکل له کوم ډول کرښو څخه جوړ شوی دی؟**

**۲. ایا ویلی شئ چې په لاندې انځور کې څو ډوله کرښې لیدل کیږي؟**



لومړی شکل(۱)



دویم شکل(۲)




**زده‌کوونکي دې په ډلو کې د درسي کتاب له مخې ساده شکلونه چې په آزادو کرښو رسم شوي دي، رسم کړي.**






**زده‌کوونکي دې د خپلې خوښې یو شکل رسم کړي.**

# رنگونه

موخه: له رنګونو سره د زده کوونکو آشنا کېدل.


پوښتنې

۱. د څو رنګونو نومونه اخېستلی شئ؟

۲. کوم رنګ مو ډېر خوښیږي؟

۳. ستاسې کالي کوم ډول رنګ لري؟


شین


سور


نارنجي


سپین


زیړ


تور


آسماني شین




زده‌کوونکي دې په خپلو ډلو کې د بېلابېلو رنګونو نومونه واخلي.






زده‌کوونکي دې په کور کې د کورنۍ له غړو سره په بېلا بېلو رنګونو خبرې وکړي چې معلومات يې زيات شي.

# گل

موخه: په مرحله یې ډول د گل له انځورولو سره د زده کوونکو آشنا کېدل.


پوښتنې

۱. تاسې په بېلابېلو رنګونوګلان لیدلي دي؟.

۲- تر اوسه مو گل انځور کړی دی؟



(۲)




زده‌کوونکي دې گل په ساده کرښو انځور او تکمیل کړي.



(۳)




زده‌کوونکي دې یو گل غوره او هغه دې انځور کړي.

# د گل رنګول

موخه: د ګل دانځورولو او د هغه له رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



## پوښتنې

۱. ګلان کوم رنګونه لري؟

۲. تاسې د ګل په رنګولو کې له کوم رنګ څخه ګټه اخلئ؟






زده‌کوونکي دې د دریم شکل په شان یو گل رسم او رنگه کړي، بیا دې هغه بیاتي کړي. بیا دې د خپلې کتابچې پر پوښ ونښلوي.



(۱)



(۲)




زده‌کوونکي دې له خپل چاپېریال څخه یو گل رسم او رنگه کړي.

# د پاڼې انځور

**موخه: پړاو په پړاو د ونې یا پاڼې له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.**



## پوښتنې

۱. کله مو د ونې پاڼه انځور کړې ده؟

۲. د ونې د پاڼې رسمول له کوم پړاو څخه پیلوئ؟



(۱)




زده کوونکي دې د ونې پاڼه د ټولګي د تختې او یا د کومې ونې له پاڼې څخه په خپلو کتابچو کې رسم کړي.



(۲)




زده کوونکي دې په خپله خوښه یوه پاڼه انځور کړي.

# د پاڼې رنګول

**موخه: د ونې د پاڼې د انځورولو او د هغه له رنګه کولو سره د زده‌کوونکو بلدتیا.**



**پوښتنې**

**۱- څو ډوله پاڼې مولیدلي دي؟**

**۲-رسم شوې پاڼې یوه له بلې سره څه توپیر لري؟**



(۱)




**زده‌کوونکي دې لاندې شکلونه رسم او په خپله خوښه دې رنګه کړي.**








**یوه پاڼه په خپلو کتابچو کې رسم او بیایې رنګه کړئ.**

# سابه

موخه: پړاو په پړاو د کدو او گازرې له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



## پوښتنه

۱. په دې مخ کې څه شی وینئ او له هغو څخه څه گټه اخیستل کیږي؟








**زده کوونکي دې په ډلو کې د یوه بل په مرسته د کدو او گازرې شکلونه انځور کړي.**



(۱)



(۲)



(۱)




**په خپلو کتابچو کې د کدو او گازرې انځور و کاږئ.**

# مېوې

موخه: د پنسل په مرسته د ساده شکلونو (ناک او منې) له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنې

۱- کومې مېوې مو خوښېږي؟

۲- د لاندې شکلو نومونه واخلئ؟






**زده کوونکي دې په انفرادي ډول په خپلو کتابچو کې مڼه او ناک انځور کړي.**





(۲)




**زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې یوه مڼه او یو ناک رسم کړي.**

# د مېوو رنگه کول

موخه: د پنسل او رنگونو په مرسته د ځینو مېوو له رسمولو او رنگه کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنې

۱. د لاندنیو شکلونو نومونه پېژنئ؟

۲. آیا پوهېږئ چې په لاندېنیو شکلونو کې کوم رنگونه کارول شوي دي؟



(۱)




زده کوونکي دې پورتني انځورونه رسم کړي، بیا دې د هغوی په رنګونو فکر وکړي او په ډېر غور او دقت دې رنګه کړي.





(۲)






له پورته شکلونو څخه یو، په کور کې رسم او رنګه کړئ.

# د هیلۍ انځور

**موخه: د هیلۍ له انځورولو سره د زده‌کوونکو آشنا کېدل.**



**پوښتنې**

۱- په لاندې شکل کې څه شی وینئ؟

۲- ایا ویلی شئ چې هیلۍ چېرته ژوند کوي؟



(۱)




**پورته شکل ته په ځېرسره وګورئ او بیا د هغه له مخې په ساده خطونو د هیلۍ انځور وکاږئ.**




**یوه هیلۍ په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.**

# د هیلۍ رنګه کول

**موخه: د هیلۍ د شکل له رنګه کولو سره د زده کوونکو آشنا کول.**



**پوښتنه**

۱. څه فکر کوئ چې هیلۍ څه ډول رنګونه لري؟



۱




زده‌کوونکي دې هیلۍ رسم او رنګه کړي او بیا دې هغه بیاتي او د رسم په کتابچه کې دې ونښلوي.






۲

ټولو پړاو ونو ته په پاملرنې سره یوه هیلۍ رسم او رنګه کړئ.

# کبان

موخه: د کبانو له رسمولو سره د زده‌کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

۱. آیا تاسو کبان لیدلي دي؟



(۱)




زده کوونکي دې لاندیني شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم کړي.



(۲)




زده کوونکي دې د کب شکل انځور او رنګ کړي.

# د کب رنگه کول

موخه: د کب له رنګه کولو سره د زده کوونکو آشنا کېدل.



پوښتنې

۱- تراوسه مو څو رنګه کبان لیدلي دي؟

۲- آیا تاسو کله کب انځور کړی دی؟



(۱)




زده کوونکي دې د رسم پراوونو ته په ځیر وګوري او بیا دې انځور کړي.



(۲)




زده کوونکي دې یو شکلی کب انځور او د خپل ښوونکي له نظره تیر کړي.

# پیشو

موخه: پړاو په پړاو د پیشو له انځورولو سره د زده کوونکو آشنا کېدل.



## پوښتنې

۱- آیا تاسو کله پیشو انځور کړې ده؟

۲-تاسو له کوم ځایه د پیشو انځور پیلوئ؟



(۱)




**لاندیني شکلونه سره یو ځای کړئ، د پیشو شکل تکمیل او رنګه کړئ.**



(۲)






**په خپلو کتابچو کې یوه پیشو انځور او ټولګي ته یې راوړئ.**

# اصلي رنگونه

موخه: د اصلي رنگونو له یوځای کېدو سره د زده کوونکو آشنا کېدل.



## پوښتنې

۱. په لاندېنیو شکلونو کې کوم رنګونه وینئ؟

۲. د زیړ او سور رنګ له یوځای کېدو څخه کوم رنګ لاسته راځي؟



سور



زیړ



آسماني شین




په لاندینیو شکلونو کې کوم رنګونه اصلي دي، نومونه یې واخلئ.


سور


آسماني شین


زېړ


نارنجي


شفتلي شین


بنفش




د کور په لوښو کې یو اصلي رنګ په ګوته کړئ او په ټولګي کې یې نوم واخلئ.

# لاسي کار

موخه: د چاپېريال له ساده توکوڅخه د یو لاسي کار له جوړولو سره د زده کوونکو آشنا کېدل.



## پوښتنې

۱. کله مو لاسي کار جوړکړی دی؟

۲. تاسو له کومو موادو څخه لاسي کار جوړولی شئ؟



(۱)

## فعالیتونه

زده کوونکي دې مڼه او ناک په ټولګي کې انځور او رنګه کړي او بیا دې هغه د یو بل په مرسته بیاتي کړي او په یوه سپین کاغذ دې ونښلوي او د خپل ښوونکي له نظره دې تیر کړي.



(۲)

### کورنۍ دنده

پورتني فعالیت یو ځل بیا تکرار کړئ.

# کاپي کول

**موخه: د پانې له کاپي کولو سره د زده کوونکو آشنا کېدل.**



**پوښتنې**

۱. کله مو کوم شکل کاپي کړی دی؟

۲. آیا کولی شئ چې یوه پانه کاپي یا ټاپه کړئ؟








زده‌کوونکي دې د ونې یوه پاڼه د کاغذ لاندې کېږدي او د پنسل په واسطه دې هغه د لاندې شکل په شان کاپي کړي.



(۲)




په یوه سپین کاغذ کې د ونې یوه پاڼه کاپي کړئ.

# د پاکټ لاسي کار

**موخه: د پاکټ له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتيا.**



**پوښتنې**

**۱- کله مو له کاغذ څخه پاکټ جوړ کړی دی؟**

**۲- له پاکټ څخه څه ګټه اخيستل کيږي؟**



۴



۵



۶




**زده کوونکي دې یوازې د لاندې شکل په شان پاکټ جوړ کړي.**



۲



۱



۳




**زده‌کوونکي دې په کور کې له کاغذ څخه یو پاکټ جوړ کړي او ټولګي ته دې راوړي.**

# د کښتۍ لاسي کار

موخه: له کاغذ څخه د کښتۍ له جوړولو سره د زده‌کوونکو آشنا کول.



پوښتنه

۱- کله مو له کاغذ څخه کښتۍ جوړه کړې ده؟






زده کوونکي دې د لاندیني شکل په شان له کاغذ څخه یوه کښتۍ جوړه کړي.



۱



۲



۳




زده‌کوونکي دې په کور کې یوه کښتۍ جوړه او هغه دې خپل وړوکي ورور یا خور ته ډالۍ کړي.

# له کاغذ څخه د ګل جوړول

موخه: له سپین او یا رنګه کاغذ څخه د ګل له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنې

۱. کله مو له کاغذ څخه ګل جوړ کړی دی؟

۲. تاسو کله په لاس جوړ شوي کاغذي ګلان لیدلي دي؟








**زده‌کوونکي دې له بېلګې سره سم یو مربع شکله کاغذ قات کړي او د پړاوونو په پام کې نیولو سره دې کاغذ بیاتي او لاس ته راغلی ګل دې رنګه کړي.**



(۱)



(۲)



(۳)



(٤)




**له یوه کاغذ څخه یو ګل جوړ کړئ او ټولګي ته یې راوړئ.**

# له کاغذ څخه د کوترې جوړولو لاسي کار

موخه: له کاغذ څخه د کوترې له جوړولو سره د زده‌کوونکو آشنا کول.



پوښتنې

۱- کله مو له کاغذ څخه کوتره جوړه کړې ده؟



۴



۵



۶




زده کوونکي دې له پورته شکل سره سم د ټکو له ځایه خپل کاغذ قات او پراوونه دې په پام کې ونیسي او یوه کوتره دې جوړه کړي.







له کاغذ څخه کوتره جوړه او هغه په خپله خوښه رنګه کړئ.

# د چرګې رسمول

موخه: د بېلابېلو شکلونو له یوځای کېدو څخه د یوې چرګې له جوړولو سره د زده کوونکو آشنا کول.


پوښتنې

۱- په لاندې شکلونو کې څه شی وینئ؟

۲- آیا له لاندېنیو توکو څخه یو لاسي کار جوړ ولی شئ؟



(۱)




زده‌کوونکی دې پورته شکلونه بېل بېل انځور او رنګه کړي او بیا دې هغه بېل بېل بیاتي کړي او په یوه سپین کاغذ دې داسې ونښلوي چې یوه چرګه ترې جوړه شي.









(۲)




د چاپېریال له موادو څخه په ابتکاري ډول یوه چرګه جوړه کړئ او ټولګي ته یې راوړئ.

# د گوتو له نښانو څخه د شکلونو جوړول

موخه: د گوتو له نښانونو څخه د شکلونو له جوړولو سره د زده کوونکو آشنا کول.



**پوښتنه**

۱- د گوتو له نښانونو څخه شکلونه جوړولی شئ؟






زده‌کوونکي دې د گوتو له نښانونو څخه په گټه اخېستنه بېلابېل شکلونه رسم کړي.






زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د گوتو له نښانونو څخه په گټه اخېستنه یو شکل رسم کړي.

**دویمه برخه دښوونکي لارښود:**

دریم لوست

(۷) مخ **د رسامۍ د هنر د تدریس لارښود**

لومړی درسي ساعت **(د تدریس وخت دوه درسي ساعتونه)**

| | | |
|---|---|---|
| **د لوست سرلیک** | **د رسامۍ د هنر وسایل** | |
| **عمومي موخې** | د رسامۍ د هنر د وسایلو پېژندنه او له هغه سمه ګټه اخستل. | |
| **د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | له زده کوونکو هیله کېږي چې د هر لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي.<br>• د رسامۍ د هنر له وسایلو سره به بلدتیا پیدا کړي.<br>• د رسامۍ هنر له وسایلو به سمه استفاده وکړای شي.<br>• د رسامۍ هنر له وسایلو سره به مینه پیدا کړي او له هغې په سمه استفاده وکړای شي. | |
| **د تدریس لارې** | ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه. | |
| **د تدریس اړین توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، کرکي قلم، تباشیر، مشوانۍ او خط کش. | |
| **د ارزونو لارې** | په عملي توګه مشاهده کول. | |
| **لومړني یا مقدماتي فعالیتونه** | له سلام او لنډې احوال پوښتنې وروسته، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم او د تېر درس یادونه. | وخت ۵دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځ ته کول**<br>**پوښتنه:**<br>-تاسو د رسامۍ د وسایلو نومونه اخیستلای شئ؟ | ۵ دقیقې |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|
| ۳۵ دقیقه | -د رسامۍ د هنر وسایل پر تختې رسم کړئ او د هغې په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>-د رسامۍ د هنر وسایل او د هغې د استعمال د لارو چارو په اړه معلومات ورکړئ.<br>-د رسامۍ د وسایلو د نومونو په اړوند هغوی ته معلومات ورکړئ او د هغوی پوښتنو ته ځواب ورکړئ.<br>- د دوی کارونه واروئ. |

**ارزونه**: د خپل ډاډ ترلاسه کولو لپاره چې زده کوونکي په لوست پوهیدلي دي او یانه، د څو پوښتنو په کولو هغوی ارزوي.

**کورنۍ دنده**: د رسامۍ هنر د څو وسایلو نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

**اضافي معلومات**

ماشومان په لومړۍ دوره کې له (۱-۳) کلنۍ پورې د دوی له عمرسره سم مینه لري چې د رسمولو له لارې رنګول او له ساده سیمه ییزو موادو څخه، لکه: ګل، لرګي او بېلابېلو کاغذونو څخه، هغه څه چې په ذهن کې لري، جوړوي.

د لومړۍ دورې ښوونکي ته څرګنده ده چې زده کوونکي له ۱۵-۳۰ دقیقو پورې یو کار به ډېره مینه ترسره کوي، خو له دې څخه زیات وخت کې یې ورو ورو مینه کمیږي، په دې صورت کې به د کار دوام ګټه ولري، خو ځینې وختونه زیانو نه هم لري.

ماشومان په (۷-۹) کلنۍ کې ډېر وخت له ځان سره مصروف وي، په دې معنا چې ټول شیان له خپلې خوښې سره سم غواړي، له دې امله هغه کار چې ورته په ګوته کیږي، که چیرې د ماشوم او د ماشوم کورنۍ له ژوند او چاپېریال سره سمون ولري، په دې صورت کې ماشوم په پوره مینې او علاقې سره هغه ترسره کوي او په چټکۍ سره زده کړه ترسره کیږي.

پنځم لوست

(۱۱) مخ

لومړی درسي ساعت

**د رسامۍ هنر د تدریس لارښود**

**(د تدریس وخت دوه درسي ساعتونه)**

| | | |
|---|---|---|
| **د لوست سرلیک** | **منظم خطونه** | |
| **عمومي موخې** | زده کوونکي به منظم خط او د هغې له رسمولو سره اشنا شي. | |
| **د زده کړې موخې**<br>**(پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | له زده کوونکو هیله کیږي چې د هر لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي<br>• زده کوونکي به د رسامۍ او رنګولو له طریقو سره آشنایي پیدا کړي.<br>• زده کوونکي به منظم خطونه وپېژني.<br>• زده کوونکي به د منظمو خطونو له رسمولو سره مینه پیدا کړي. | |
| **د تدریس لارې** | ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه. | |
| **د تدریس اړین توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، کرکي قلم، تباشیر، مشوانۍ او خط کش. | |
| **د ارزونو لارې** | په عملي توګه مشاهده کول. | |
| **لومړني یا مقدماتي فعالیتونه** | سلام اچول، پوښتنه د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې لیدنه، له تېر لوست یادونه او له نوي لوست سره یې اړیکې. | وخت ۵دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځ ته کول**<br>**پوښتنه:**<br>-کله مو منظم خطونه رسم کړي دي؟ | ۵ دقیقې |

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|
| ۳۵<br>دقیقه | -منظم خطونه دې پرتختې رسم او د هغې د رسمولو لارې دې په عملي ډول زده کوونکو ته ور زده کړئ.<br>- د منظمو خطونو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ چې هغوی په خپلو کتابچو کې یو آزاد خط رسم کړئ.<br>- د هغوی کارونه اصلاح کړئ.<br>- د دوی پوښتنو ته ځواب ورکړئ او مشکلات یې حل کړئ. |

**ارزونه**: د خپل ډاډ ترلاسه کولو لپاره چې زده کوونکي په لوست پوهیدلي دی او یانه، د څو پوښتنو په کولو هغوی ارزوي.

**کورنۍ دنده**: په خپلو کتابچو کې له منظمو خطونو څخه یو رسم کړئ او ټولګي ته یې راوړي.

**اضافي معلومات**

۱-ماشومان د منظمو خطونو رسمولو او لاسي کارونو جوړولو ته وهڅوئ، هڅه وکړئ چې په هغوی کې ځینې مفکورې تحریک کړئ چې پرمختګ وکړي.
ځینو فابریکو او سیمو ته.
۲- سیر علمي، د کتابتونونو لیدلو او د ځینو کیسو ویلو ته هغوی وهڅوئ او انګیزه یې راوپاروئ.
۳-کله چې ماشومان تیار شول، هغوی پر بږدئ چې هر څومره ژر خپل هنري کارونه پیل کړي.
٤-په نوښتګرو کارو کې د نورو مضمونونو له موضوعګانو څخه ګټه واخلئ.
۵-د نوښت او د مفکورو د پرمختیا او پراختیا لپاره په ټولګي له خبرو اترو کار واخلئ.
٦- هغوی بوخت وساتئ او هغه خنډونه چې د دوی د کار په وړاندې پراته وي، له مخې لرې کړئ.
۷-له نیمګړتیاوو او محدودیتونو یې باید خبرتیا ولرئ، داسې شرایط ورته برابر کړئ چې د دوی د پرمختیا سبب شي.